

# د سولې کوچنۍ اتل

# سوله




۵

د سنایي د پرمختیایي موسسې



# د سولې کوچنی اتل


خپرونکې : د سنايي پرمختيايي موسسه
مسول مدير : راز محمد دليلي
ليکونکی : احمد فريد عارفي
پښتو ژباړه : غلام حضرت رحيمي
انځورګر : فتانه بکتاش عارفي
کمپوز او ديزاين : سيد نذير حسيني

لومړی طبع : ۱۰۰۰ ټوکه، د سنايي پرمختيايي موسسه (SDO) د ۱۳۸۶ د وري مياشت.
دوهم طبع : ۱۰۰۰ ټوکه، د سنايي پرمختيايي موسسه (SDO) د ۱۳۸۷ د ژمی مياشت.
دريم طبع : ۱۰۰۰ ټوکه، د سنايي پرمختيايي موسسه (SDO) د ۱۳۸۸ د ژمی مياشت.
خلورم طبع : ۲۰۰۰ ټوکه، د سنايي پرمختيايي موسسه (SDO) د ۱۳۸۹ غويا مياشت.



اتم سړك، قلعه فتح الله د سنايي موسسه: په کابل کې پته
تيلفون: ۲۲۰۱۶۹۳ - ۰۲۰
۱۸۱ پوست بکس
بريښنا ليك: sieal@brain.net.pk
انترنيت پانه: www.sanayee.org
اورکزي پلازې شاته، يونيورستي تاون، پيښور پاکستان: په پاکستان کې پته .
تيلفون: ۰۰۹۲ - ۹۱ - ۵۸۴۲۱۵۵ - ۹۱۵۸۲۱۶۵
فکس: + ۹۲+ ۹۱ - ۵۸۴۵۱۳۹




تصویري کیسه

# د سولې کوچنی اتل

# سوله



# د سولې کوچنی اتل

مور د څلورم ټولګي زده کوونکو په ښوونځي کې ښه نوم او نښان درلود. زموږ دغه شهرت پخپلو کې د دوستۍ، صمیمیت، ملګرتیا او له یو بل سره د همکارۍ په خاطر وو.
زموږ درویشت کسیزه ټولګي ځانګړې نظم او ترتیب لرلو ځکه ټول په داسې حالت کې وو چې د یو او بل له خوښې او د نورو دوستانو له خوشحالۍ پرته مو د بل څه په

ځکله فکر نه کولو.

د ښوونځي د کارونو په سرته رسولو کې مو هم خپله همکاري نه سپموله. خالد او نوید زموږ دوه تنه ټولګې ملګري وو چې ښو اخلاقـــو، ښې روزنې او ښه لیاقت نمونه وو.

مسـعود هم د هغوي یو نږدې دوسـت و. هغوي ډېر خواږه ملګري وو. تل بـــه یې کوښښ کولو چې نورو ته ګټور تمام شي. ورځې او اوونۍ تیرې دې او زموږ ټولـو په زړونو کې د مینې او دوستۍ خپې ورځ په ورځ زیاتیدې. ټول په لوسـتونو بـوخت وو ځکه څلور نیمه میاشـــتنۍ آزموینه را روانه وه.

د يادولو وړ ده چې ډېر زړه ســوانده او مهربانه ښوونکي مو هم درلودل. هغوي هم زموږ په ښوونه او روزنه کې زيـات زيار ګالـه. خو لکـه څنګه چې د ژوند د خوشحـــالۍ ورځې کمې وي، زموږ د ټولګي پر فضا بـانديې هم د خوابــديو تورې وريځې راخورې شـــوې او هغه داسې چې:

يو ورځ خالد او نويد د همېشني عادت پر خلاف [illegible] غير حاضر [illegible] چې ولې [illegible] غير حاضري کړې ده. ځکه هغوی هېڅکله هم غير حاضري نه کوله.

سبا هم په ټولګي کې د هغوي ځایونه تش وو، ټول حیران وو چې زموږ په دغو دوستانو څه شوي دي چې نه دي راغلي. تردې چې په دریمه ورځ خالد یوازې او ډیر خواشینی ټولګی ته راغی. په څیره کې یې هغه پخوانۍ خوشحالي نه وه. خواشینی او خپه ښکاریده. ټول ورڅخه راتاو شول، هریو ورڅخه پوښتنې کولې، چیرته وې خالد جانه! نوید ولې نه دي راغلی؟ ژرشه ووایه چې موږ ټول درپسې خپه وو. خالد پټه خوله وه او ځواب نه راکاوه.

په پای کې مو په لوړ غږ او جدي توګه

ورځخه وپوښتل: خالد جانه ووایه چې ځه پېښ شوي دي؟
آخر د خالد شونډې بېرته شوې، په داسې حال کې چې له خیرې څخه یې قهر اورېده په رپېدلو شونډو یې وویل:
«د نوید پوښتنه مه کوۀ! افسوس چې نوید نور هغه پرونی نوید نه دی. زما هیلې او آرزوګانې یې په ایرو بدلې کړې. ما هغه دوست او ورور باله، خو اوس هغه یو خود خواه او کلان کاره بنیادم شوی دی، چې تاسې نه پوهیږۀ خو زه پوهیږم. ما له خپلو غمونو سره پرېږدۀ او ولاړ شۀ...»

د خالد خبرې لاپای ته نه وې رسیدلې چې لوست پیل شو او د دري ښوونکی صاحب ټولګي ته راغی. زده کوونکي ټول د هغه په احترام ودریدل. کله چې د دري ساعت پای ته ورسید او تفریح شوه، ټول زده کوونکي د خالد په شاوخوا راټول شول او بیا مو هم غوښتل ورڅخه پوښتني وکړو خو خالد د اوبو څښلو په بلمه له مونږ څخه لرې شو.

ټول دوستان په تیره بیا مسعود خواشیني و چې حتماً کومه مهمه پیښه شوې ده چې خالد دومره د نوید په باب یادونه کوي. ځکه هغوي مو څلور کاله داسې نه وو لدلي چې

ترمنځ يې کوم کوچنی خپګان هم پيښ شوی وي.
موږ هيڅ يو نه پوهيدلو چې ولې دغه دوه تنه دوستان له يو بل نه خپه شوي دي چې ان دوه ورځې له ښوونځي څخه هم غير حاضر شول. د رخصتۍ په وخت کې هم خالد بکس او کتابونه تر تخرګ لاندې کړل. په بيړه ان په منډو سره د کور په لور روان شول. ټولو د ټولګي ملګرو او مسعود په حيرانتيا سره دې حالت ته کتل او ټولو تعجب کاوه او نه پوهيدل چې څه وکړي.
فکر مو وکړ چې د نوید راتلو ته انتظار وباسو چې په خبره پوه شو او لاره چاره

یې ومومو.

تاوده لمر اړ کړو چې د خپلو کورونو په لور روان شو او یو څه دمه وکړو.

سبا کله چې موږ د خپل ټولګي په تنظیم بوخت وو نوید ورو ټولګي ته راننوتلو او په لوړ غږ یې ټولو ته سلام واچاوه، ټولو په خوشحالۍ او غالمغال سره هغه په لاسونو کې پورته کړ او شکر مو وکړ چې بیا ټول سره یو ځای شو.

خو خو شیبې لا نه وې تیرې شوې چې دې چغو خپل ځای سکوت او چوپتیا ته ورکړ او بیا هر یوه پوښتنه کوله چې دا څو ورځې ولې

رانه غلي؟ ولي؟ ولي؟ په پای کې نوید
سل زړونه یو کړل او خپله کیسه یې داسې
بیل کړه:
درې ورځې مخکې چې د مازدیګر له
لمانځه وروسته مې وره نان وایی ته ورل،
د نانوایی ترڅنګ د ویډیو ګیم کلپ دی
چې هلکان هره ورځ په کې ویډیو ګیم
کوي. یو ناڅاپي مې خالد له نورو دوو تنو
سره په ویډیو ګیم کې ولید ، ډیر خپه
شوم، له ځانه سره مې وویل خالد او دا
ځای؟؟؟
له دې امله چې خالد ډیر را باندې ګران و نو
ځان مې کنترول نه کړ او په قهر سره مې پرې
غږ وکړ: دا ستا ځای نه دی! زه خجالت باسم

چې ستا دوست يم او نور په لسګونو

نصيحتونه خو د خالد غوږونه لکه چې

کاڼه شوي وي، زما خبرو ته يې هيڅ پام

ونه کړ او له دې امله چې هغه د خپلو

ويډيو ګيم بازه ملګرو ترمنځ وشرميد،

زه يې په خرابو او ناوړو خبرو خپه کړم او

د خپلو دوستانو په لمسون يې په مخ په

څپيړه ووهلم.

کله چې خبره دې ځای ته را ورسيده،

نويد سوړ اسويلی وکيښ او وې ويل: د

نيکۍ سزا بدي ده.

له يوې لنډې چوپتيا وروسته نويد د خپلو

خبرو په دوام وويل: ما خالد پيژاند، ستاسو

په شان د هغه له اخلاقو، روزنې او لياقت څخه خبر وم نو کله مې چې دوه ی کور ته ورسوله له مور څخه مې اجازه واخيستله او د خالد دوي کور ته ورغلم. نږدې يو ساعت ورته ماتل شوم چې له هغه سره له نږدې خبر وکړم، خپلو کړو وړو ته يې متوجه کړم او بيرته سره دوستان شو. خو کله چې خالد کور ته راغی او زه يې وليدلم باور وکړی...

د نويد له سترګو څخه اوښکې روانې شوې او ستونی يې ډک شو. ټولو دوستانو سرونه کښته اچولي وو او خپه وو.

نويد خپلې اوښکې پاکې کړې او غاړه يې

تازه کړه او بیا یې په خبرو پیل وکړ:
زه هغه شپه د خپلې خولې په ترخه مزه پوه شوم. وپوهیدم چې د یو دوست له لاسه ورکول څومره سخته خبره ده.
سبا مې له خپلې مور سره مشوره وکړه او بیا د خالد دوي کور ته ورغلم چې د هغه له مور او پلار سره چې زه هم د خالد په شان پرې ګران یم خبرې وکړم او هغوي د خالد په دې کار خبر کړم، کله چې د هغوي کور ته ور ننوتم، د ورځې په وخت کې په کور کې د خالد له موجودیت څخه حیران شوم.
زما په فکر خالد له شرمه مکتب ته نه و

تللی او په کور کې ناست و.

نوید لاخپلې خبرې نه وې خلاصې کړې

چې خالد په چټکۍ سره ټولګي ته را

ننوت او له سلام او پوښتنې پرته د صنف

په یوه وروستۍ چوکۍ کیناست.

ورځې تیریدې او موږ داسې یوه شول چې

خالد یې په کور کې هم ملامت کړی دی او

خالد د نوید په وړاندې لاپسې عقده مند

شوی دي. او له زړه نه ورځخه خپه دی او

هیڅ کله یې نه غوښتل چې بیا له نوید

سره دوستي وکړي.

د ځلورم ب ټولګي نور هغه پخوانی ټولګي

نه و، هر یو په یو کونج کې کیناست او

خپل لوستونه مو لوستل.
خالد او نوید چندان له لوست سره مینه نه درلودله. کورنۍ وظیفې یې هم نه کولې. مور پلار د هغوی په دې حالت خواشیني وو، خو مسعود له نورو څخه زیات خپه و.
څکه هم خالد او هم نوید د هغه ښه دوستان وو. زموږ ټولګي ملګرو د مسعود په مرسته څو ځلې هڅه کړې وه چې نوید او خالد سره پخلا کړو خو امکان یې پیدا نه کړ، څکه خالد نا اهله ملګرو له کاره ایستلي و. هغوي نوید د خالد دښمن باله او خالد یې هڅولو چې له نوید سره پخلا نه شي. د دې

خبرې علت هم څرګند وا و هغه دا چې د
هغوي ويډه يو ګيم خوښ و خو له لوست او
ښوونځي سره يې دښمني وه. خو خالد
په دې ورځو کې ويډيو ګيم ته هم نه تللو.
کرار کرار د ټولګي زده کوونکي هم په
دوو ډلو وويشل شول څوك د نويد
پلويان وو او څوك هم د خالد. دوي ټول
هغه دوستان وو چې خپل ټول ځواك او
انرژي يې په صميميت، دوستۍ او د
ټولګي په ترتيب او تنظيم لګوله خو
اوس زموږ ټولګي خپل شهرت له لاسه
ورکړيدی.
مسعود تل پريشانه و او زيات تلاش يې

کاوه چې دغه حالت پای ته ورسوي خو نه
بریالی کیده. د پښتو او دري ښوونکي
هم په دې موضوع باندې ځه نا ځه خبر
شوي وو، ځکه د ټولګي حالت په ښکاره
دا موضوع بیانوله. هغوي ځو ځلې له
زده کوونکو ځخه پوښتي وو چې په
موضوع پوه شي، خو موږ له شرمه خپلو
ښوونکو ته ځه نه ویل. موږ ټول پوهیدلو
چې جنګ او دعوا ښه کار نه دی او زموږ
خواږه ښوونکي خپه کیدل.
شپې ورځې تیریدې، داسې وخت را ورسید
چې مسعود هم غیر حاضري پیل کړه، تر
دې چې غیر حاضري یې لسو ورځو ته

ورسـيدله. هلكان پريشانه وو ځكه
آزمويني را رسيدلې وې. مور ټولو
لوستونه ويل او كوښښ مو كولو خو د
مسعود درك نه و، تر هغه چې مسعود
يو ورځ راغى كله چې هغه له لس
ورځنۍ غير حاضرۍ وروسته ټولګي ته
ننووت، د دري ښوونكى د حاضرۍ په
اخستلو بوخت و، د مسعود حالت
داسې ښكاريده چې تا به ويل كوم مهم
پيغام يې راوړى دى. مور ټولو د
پوښتنې حالت غوره كړى و. خو د
ښوونكي صاحب موجوديت د پوښتنې
اجازه نه راكوله. مسعود د دري له
ښوونكي سره د روغ بړ په وخت كې د

ښوونکي صاحب په غوږ کې څه وویل

چې موږ وانه اوریدل.

کله چې مسعود په څوکۍ کیناست،

ښوونکي صاحب وویل: نن لوست نه

وایو، مسعود جان موږ او تاسې ته د

خپلې غیر حاضرۍ کیسه کوي.

دا د جنګ او سولې د ښارونو یوه

ریښتینې کیسه ده چې مسعود تیرې

لس ورځې هلته تیرې کړې وي او د

هغو ښارونو حالات یې لیدلي دي.

اوس زه د مسعود په څوکۍ کښینم او

له تاسو سره یو ځای د هغو کیسې ته

غوږ نیسم.

مســـــعود د صنف مخې ته ودرید او د خپلې کیسې له پیل مخکې یې یو شمیر عکسونه له خپل بکس څخه را وایستل او د ښوونکي صاحـــــب پر میز یې کېښودل. موږ ټول د کیســـــې اورېدو ته منتظر وو.

مسعود غاړه تازه کړه او خپله کیســه یې په یو غمجن حالت او غږ سره داسې پیل کړه.

ماما کره چې د جنګ په ښار کې دی ولاړو. کله چې ښار ته ورسیدو... مسعود نه شو کولای خپلو خبـــرو ته دوام ورکړي، ځکه ستوني یې ډک ډک کیده او اوښکې یې په سترګو کې راټولې شوې وې. موږ هم به یې

صبرۍ سره د هغه د کیسې د اورېدو په انتظار وو چې د جنګ په ښار کې څه پېښ شوي دي. بالاخره مسعود په ژړه غوني غږ سره خپلې کیسې ته دوام ورکړ.

مخکې له دې چې له خپل ښار څخه روان شو موټر نه پیدا کېده. موټروانان بېرېدل او ویل یې: موږ ښار ته نه شو تللای ځکه هلته جنګ دی. له زیات انتظار او د موږ له زاریو وروسته یو موټر چلونکي ومنله چې موږ د جنګ ښار ته ورسوي. د موټروان له څېرې څخه ښکارېده چې مهربانه سړی دی. ځکه په هغو شرایطو کې هیڅوک نه حاضرېدل چې

ځان له خطر سره مخامخ کړي. موږ اړ وو
چې ولاړ شو. ځکه ماما مې احوال را
استولي وو چې ورتګ يې حتمي کاوه.
لنډه دا چې موټر روان شو او په دوړو او
خاورو کې مخکې ته سړك نه ښکاريده
چې چيرته دی. څو تنه نور هم چې له موږ
سره په موټر کې ملګري شول پخپلو کې
يې سره ويل: ښه وشو چې ددغې مور او
زوي له برکته مو موټر پيدا کړ. خدای دې
وکړي چې په خير ورسيږو او موټر په
مرميو او يا توغندي ونه لګيږي. زه او
مور مې هم ډاريدلو ځکه د ماين خطر هم
و.
له يو ساعت وروسته مو په لاره کې د يو

ښوونځي وداني وليدله چې سوې او ورانه شوې وه. څوکۍ او د ښوونکي ميز او نور له ياده تللي خوبونه وو چې ګڼې هيڅ نه وو.

ټولګي او د مکتب د ادارې د يوالونه سوري سوري وو. د کلي يوه سپين ږيري کيسه کوله چې څه موده مخکې په همدې ښوونځي کې يو ښوونکی او درې تنه زده کوونکي د توغندي د لګيدو له امله شهيدان شول. هغه دي هغه بيرغونه وينې! هغه يې قبرونه دي. کله چې له ښوونځي څخه تير شو لاره ډيره خرابه وه او موټر ورو ورو روان و. ما د سړک ښي او کيڼ خواته کتل بدبختيانې مې ليدلې،

غمونه مې ليدل او د جګړې محصول مې
ليد . له نيم ساعت وروسته يو روغتون ته
ورسيدو مور مې تړې شوې وه له موټروان
څخه يې وغوښتل چې ودريږي. کاشکې
هيڅکله نه وای دريدلي، روغتون ته
ورننوتلو. نه پوهيږم څنګه مو د هغو ټولو
شيانو د ليدلو زغم کاوه. د خلکو بيروبار
د کورنيو ناري سورې، د ناروغانو زګير
وي. درې تنه ډاکتران او يو نرس د
ژغورونکو ملايکو په شان هر خوا
زغليدل او ټپيان يې د عملياتو خونو ته
وړل. ټپيان اکثره ماشومان وو. يو مور
ډاکټر ته زاری کولې چې ډاکټر صاحب،

ماشوم مې د مرګ په حال کې دی. ډاکټر ورسره په نرمۍ خبرې کولې. ددې صحنې په لیدلو سره مې مور او به هم ونه ښيلي.

یو ډاکټر مې مور ته ویل نن سهار په هغه نږدې کلي کې درې څلور توغندي ولګیدل چې په ترخ کې یې په لسګونو تنه مړه او ګڼ شمیر ټپیان شول. ستړګې مې تورې تورې کیدې د مور لاس مې ونیو او په زیاتې خواشینۍ سره موټر ته وروختلو.

د موټر سورلۍ موږ ته انتظار وې. هغوی ټول خواشیني او خپه ښکاریدل. یوه مرګونې چوپتیا په موټر کې خپره وه. موټر روان و او

موږ هم په چرتونو کې ډوب وو.
د ماما تر کوره مو يوه خبره هم سره ونه کړه. د ماما د کور خواته مو له موټروان څخه وغوښتل چې موږ پلي کړي. کله چې د ماما کره ورسيدو فکر مې وکړ چې له مړو سره مخامخ يو.
ماما د ماما ميرمنې او بچيانو يې يوازې پوستکي پرمخ لرل. لوږه غم او وحشت او په هره شيبه کې د توغنديو غږونو خلك له ګڼ شمير مصيبتونو سره مخامخ کړي وو.
ماما مې راته ويل په ښار کې نه درس شته نه تعليم. خلك ټول وږي دي جنګ د

خلکو هر څه ور څخه اخستي دي. کور نه لرو، ډوډۍ نه لرو، لوست او ښوونه نه لرو یوازې او یوازې شهیدان لرو، هره ورځ یوه مور بوره کیږي او یو زوی بې پلاره کیږي او بې موره کیږي او زړې ښځې په دعا دي چې وطن ته سوله راولي.

ښوونکي او د ټولګي ملګرو په خیر سره د مسعود خبرې اوریدلې. د ټولګي فضا خاموشه وه ځینو ورو ورو ژړل.

مسعود عکسونه د میز له سره راواخستل او د ټولګي ملګرو ته یې ښودل چې د جنګ د ښار د خلکو د تراخه ژوندانه ښکارندوي وو.

د مسعود خبرو له نورو څخه زيات پر خالد اغيزه وکړه او هغه يې حيران کړی و. نويد ژړېده. ښوونکي صاحب هم په فکرونو کې ډوب و.

مسعود عکسونه بيرته ټول کړل او خبرو ته يې داسې دوام ورکړ. دوه ورځې مو په زيات مشکل سره د جنګ په ښار کې تيرې کړې او دعا مو کوله چې ژر او په خير سره له دې ښار څخه ووځو.

د ماما مشکل مو د مور په موجوديت کې حل شو. د خلکو د غمونو او کړاوونو د اوريدو توان مو نه درلود.

دریمه ورځ شوه مور مې سهار وختي د
لمانځه له ادا کولو وروسته ورو ورو له
ماما سره خبرې کولې. زه هم یو څه له
خوبه اویښ وم، مور مې جګه شوه او
ویې ویل وروره اجازه راکړه چې د
مسعود د ترور کره ولاړه شم ستا له خور
سره هم یو څه کار لرم او ډیره موده شوې
چې هغه مې نه ده لیدلې او دا چې هلته
جنګ نه شته غواړم درې څلور ورځې
هلته پاتې شم.
کله مې چې د سولې او د ترور کور ته د تګ
خبره واوریدله او چټه له ځایه را پاځیدم او مور
ته مې وویل له ماما څخه مې اجازه واخله چې
زه ولاړ شو د سولې ښارته. مور مې په سر

لاس را تیر کړ ویې ویل تلوار مه کوه څه ولاړشه کالي دې راټول کړه.

د سولې د ښار د لیدلو له پاره مې زیاته مینه پیدا کړې وه څکه د دې ښار په باب مې د مور له خولې زیاتې کیسې اوریدلې وې. له ماما سره مو په مخه ښه وکړه او په یو زاړه موټر کې د سولې د ښار په لور روان شولو. کله چې دې ښار ته ور نیږدې شو نه خاورې نه دوړې او نه د توغندیو ډزې، زموږ زوړ موټر د الوتکې په شان روان و څکه سړکونه ټول قیر وو. میندې له خپلو بچیانو سره تلې راتلې د پلورونکو غږونه هرې خوا جګ وو. موټران

هرې خوا ته په حـــركت كې و. پوليس او
ترافيكي اشـــارې مې وليدې. په لاره كې
مـې يـو ښوونـځي وليـد چې نـوى رنـګ
شـــوى و زيات زده كوونكي د ښوونځي
و د نجونو تور كميسونه او سپين پړوني
ډير ښكلي ښكاريدل او داســــــــې
معلوميدلــــه چې د دې ښار خلـــك لــه
ښوونې او روزنې سره زياته مينه لري.
ښوونكي هم د زده كوونكو په منځ كې
ښكاريـدل. مـوټر په ښار كــې روان و او
خلك هم په كار و بــــــار اخته وو. ما ځان
ورك كړى و غوښتل مې له خوشحـــالۍ
نه چيغې ووهم.

يو ځل مې سترګې په يو روغتون ولګيدلې چې ډيره ښکلې ودانۍ يې درلوده په انګړ کې يې ښکلي ګلان ښکاريدل. د ترور کور راڅخه هير شوی و. غوښتل مې نور هم په دې ښار کې وګرځم چې موټر ودريد او مور مې راته وويل زويه راورسيدو.

کله چې د ترور کره ورسيدو هغوي ټول ډير خوشحاله او تازه ښکاريدل. ډير خوشحاله شوم د ترور زامنو ته مې وويل چې بهر ولاړ شو او په پارک کې لوبې وکړو. په پارک کې د سپورټ له پاره هر ډول وسايل وو لنډه دا چې په دغه ښار کې هره خوا خوښي او خوشحالي

وه. زمونږ ټولو ځیرې یو ځل بیا خلاصې
او خوشحالې شوې وې.
مسعود د میز له سره بیا خپل خوداني
عکسونه را واخیستل او مونږ ته یې
راوښودل دا عکسونه د سولې د
ښاروو، دومره ښکلي ښار مونږ په خوب
کې هم نه ولیدلی او پوه شو چې د جنګ
او د سولې د ښارونو ترمنځ څومره
توپیر دی.
مسعود عکسونه ټول کړل او د خالد او نوید
خواته یې وکتل او پخپل ځای کیناست.
بیا د دري د ښوونکي صاحب خپلې
خبرې داسې پیل کړې.

خوږو بچیانو! د مسعود جان کیسه مو
واورېده اوس زه له تاسې څخه پوښتم
چې کوم ښار ښه دی د جنګ او که د
سولې؟ ټولو په یوه غږ د سولې! د سولې!
په دې وخت کې د درې ښوونکې
صاحب لکه چې د ټولګي له ټولو حال
احوال څخه خبروي په مهربانۍ سره د
خالد خواته ورتاوشو او له هغه څخه یې
وپوښتل: خالد جانه ستا نظر څه دی؟
خالد چې د کیسې له پیل څخه ژړغونی
غوندې و چیغه کړه د ښوونکي صاحب
خواته یې ورمنډه کړه او د هغه په غېږ
کې یې ځان واچاوه.

ښوونکي صاحب په مهربانۍ ورته وويل:
خالد جانه بچيه!
له نويد څخه بښنه وغواړه زه له هر څه
نه خبريم له مسعود جان څخه هم مننه
وکړه.
نويد او مسعود دواړه ښوونکي صاحب
خواته ورغلل او خالد يې په غيږ کې
ونيو. نور هم ورغلل او خالد يې په غيږ
کې ونيو.
د درس ښوونکي صاحب ډير خوشحاله و
او ډير ژر د څلورم ب ټولګي بيا د سولې
او دوستۍ ټولګي شو.
په دې وخت کې ښوونکي صاحب د تختې
خواته روان شو او ويې وويل د سولې اتل

مســــعود دی چې د دوو مرورو ملګرو
ترمنځ يې د پخلاينې زمينه برابره کړله له
هغه وروسته مسعود د ســولې د کوچني
اتل په نامه ياديده.
اوس نو زموږ ټولګی سربــيره پر دې چې
ښه نوم او نښان پيدا کړ د ســولې کوچنی
اتل هم لري.

# Preface

Dear readers,

It is an obvious fact that peace is the most urgent requirement of our society and all Afghan people, old, young and children are impatiently waiting for it. But the point at the issue is that we should not wait for the others to bring peace for us. We ourselves should try hard to ensure peace in our society. We should start peace initiatives from the grassroots levels i.e. schools, families, villages and work collectives and expand it to the nation level.

Sanayee Development Organization (SDO) has published an illustrated children story in Dari language entitled "Small Champion of Peace" written by Ahmad Farid Arfi. This book gives a strong motivation for peace initiative at the grassroots level.

It is worth mentioning that the story of this book not only gives a moral lesson from disastrous consequences of war but gives a strong motivation for peace as well. This book will be usefull for the children, teenagers and other group of the society.

By publishing of this book I hope that we may take a step forward toward dissemination of culture of peace in our society.

With Regards,
Raz Muhammad Dalili




# Da Sule Kochnay Atal

(Small Champion Peace)


| | | |
|---|---|---|
| Published by | : | Sanayee Development Organization (SDO) |
| Editor - in - Chief | : | Raz Muhammad Dalili |
| Author | : | Ahmad Farid Arifi |
| Translated by | : | Ghulam Hazrat "Rahimi" |
| Edited by | : | Ass. Prof. Sarwar Mamound |
| Artist : | : | Sultan Hamid Fanoos |
| Composed By | : | Saifullah Zamani |

1st Edition : 1000 copies, Financed by (SDO), May 2007
2nd: Enditon : 1000 copies, Financed by (SDO), Nov 2007
2nd: Enditon : 1000 copies, Financed by (SDO), Feb 2008

| | | |
|---|---|---|
| Publishing date | : | Apr 2010 |
| Number of copies | : | 2000 copies |
| Financed by | : | Sanayee Development Organization (SDO) |



| | | |
|---|---|---|
| Kabul address | : | Sanayee Development Organization (SDO)<br>Qala-e-fatiullah 9th street, Near Shahoon Electricity Junction |
| Kabul telephone | : | 0093-(20) 2201693 |
| Post Box | : | 181 Kabul Afghanistan |
| Email | : | sdfkabul@ceretechs.com |
| Websites | ; | wwwsanayee.org<br>Www.nawidefarda.com |
| Peshawar Address | : | Kabul English Language Center,<br>Behind Orakzai Plaza and total CNG, university Road Shaheen Town, Peshawar Pakistan |
| Telephone | : | 0092-91-5842155 - 91582165 |
| Fax | : | +92+-1-5845139 |


